Kandahar. Kabul
Vol.3, No.6, Sumbulah 1341
(August 1962)

# کندهار

9



د شهیدانو څلی



# خال

مهـتر خضر ئې پـه عمر خریـدار شو
چې ئې «خال» غلام د مخ په نخاس ونیو
حمید ماشوخېل

«خال» په منځ د وروځو ایښې زه حیران یم
چې کاږ ګه له ایندو څنګه نه نوربېږي
علي خان خټک

شنه «خالونه» چې د یاسه پرجبین زدي
دا زما پرزړه داغـونه آتشین زدي
پیر محمد کاکړ

چې د هر سړي خاطر پـه ګرفتار دی
ار ل زلفې، درهم «خال»، درېم رخسار دی
قلـندر

په زړه داغ لکه لاله شوم په تن کوز لکه هاله شوم
چې دې وکړ مـصنمې «خال» د وروځو په بیه ند
خواجه رزق الله

چې نه «خال» اری، نه زلفې، نه سري شوندې
څوک به څه وائی چې لمر د آشنا سیال دی
خوشال شهید

«خال» د مخ ئې پلوربخ ګرزوم په زړه کې
د شپې ال په خوب کې شمس و قمر وینم
رحمت سدوزی

زوغونیږی بنفشه لـه هغو خاو رو
چې شین «خال» به ؤ د ښکلیو په مخو کې
عبدالشـکور رشاد

«خال» د یار چې اقتدا می پسې کړله
د مخ پټ سو هغه زما امام په زلفو
عبدالرؤف مخلص

ګلـکی «خال» ستا د نندي وای یا د زنی
چې پر مخ دی ځاېدای ښکلی مېرمنی
یوسف وېـران



اعلیحضرت معظم همایونی محمد ظاهر شاه زموږ محبوب او گران
ټولواکه چې د هیواد خپلواکۍ تر سیوری لاندی
ساتلی شوی او د ژوندانه په هره برخه کی د افغانی
جامعې شانداره ترقی پانصیب شوی دی



اعلیحضرت شهید سعید محمد نادر شاه [رح]
د استقلال گټندوی او د افغانستان د ټولو
مادی او معنوی ترقیو مؤسس



مرحوم والاحضرت مارشال شاه محمود خان
غازی چې د استقلال په جنګ کې
ئې لویه برخه درلوده



والاحضرت غازی مارشال شاه ولی خان د
کابل فاتح چې د وطن د خپلواکۍ لپاره
ئې لوی فداکاری کړې دي



د استقلال څلی چې د افغان ملت
د فداکاریو خاطرې تازه کوي

# کندهار

**میاشتنی خپرونه**

**ادبی . تاریخی . اجتماعی . علمی**


مسئول چلوونکی:

ا،م «کرزی»



اداره: د شهیدانو واټ

**د دولتی مطبعی څخه ته**

د ۱۳۴۱ لمریز کال د [سنبلې] میاشت
د ۱۹۶۲ میلادی کال د [ستمبر] «
د دریم کال "شپږمه" گڼه
پرله پسې گڼه [۳۰]

کالنی «بیه»
په کندهار کی [۳۸] افغانی
په دننه مملکت کی [۴۴] «
په د باندنیو هیوادو کی یو ډالر

# ددې ګڼې مضامين


| | |
|---|---|
| د پښتنو د استقلال ٤٤ کالیزه | په [١] مخ کی |
| په اوسنيو کی محیط تاثیر | » » [٣] » |
| ...ن د ملکو هغه ادبیات خوښ دی چی.... | » » [٧] » |
| سید امیر محمد شاه صدراعظم | » » [٩] » |
| شیان او جریانات | » »[١٥] » |
| [د آزادی شپیلی ته] | » »[١٨] » |
| [پر ګلانو باندی پاس زده قدم وروو دروو] | » »[٢١] » |
| [حریت] | » »[٢٢] » |
| ښاغلی سید احمد «ګلزار» | » »[٢٠] » |
| د ...داسی وادمراسم چی په.... | » »[٢٦] » |
| اروپا آ بشنت | » »[٢٧] » |
| د ملایه باب د پښتنو لنډی فیصلې | » »[٠٩] » |

# د پښتنو د استقلال ٤٤ کاليزه

پښتون هغه ملت دی چې د اېشيا
په زړه کې د آمو او اباسيند په
منځ کې ژوند کوي دا ملت
ځانله روښانه تاريخ او ځلانده
کولتور لري د دې ملت د مېړانې
کارنامې تراوسه تاريخ په
وياړ ساتلې او خوندي کړېدي
څرنګه چې دنيا د حوادثو ځای
دی او تل وخت د ملتو تاريخ
پر يوه حال ولاړ نه وي نو چې او
بدې ورځې د تريخ او قومونو
تېرې کړيدي خو د دنيا هغه
ملت بختور دی چې د بدو ورځو
زمانه ئې لنډه وي او ژر ئې د
خپل قومي سرنوشت واګې په
خپل لاس کې نيولې وي .

٤٤ کاله د مخه د شرق او افريقا
هيوادونه د لوېديځ استعمار
له خوا بېرحمانه استثمار کېدل
د دې پراخ سرزمين زياتر و
ولسونو خپل سياسي استقلال
او ملي حاکميت بايللې و د دې
ولسونو اقتصادي منابع د پردو
په لاس کې وه او د زحمت له
محصول څخه ئې د غرب پانګه-
وال و خپلې چرچې کولې د ژوند
بدې دوره کې نه يوازې دا
ولسونه د خپل مدني پېشرفت
څخه محروم پاتې شول بلکه د
انساني حقوقو اساسونه ئې هم
لتاړ شول .

کوم وخت چې استعماري تورو
تياره برهند وغوړېدله نو زموږ
ملي استقلال ئې هم د څو مدې
د پاره د سياسي نيرنګ د لارې
را څخه غصب کړ خو ډېر ژر
افغاني جامعه راوېښه شوه او د
استعمار په نيرنګ پوه شوه
که څه هم په تريخه کې د استعما-
ري سياست اساسونه لا ټينګ
او د تسلط فرمانونه ئې چلېدل
خو پښتنو بخپله فطري مېړانه
او سربازی سره داسې د پيکار د
قايم کړ چې د تورو استعمار
شوېو ملتونو د پاره د سرمشق
سبب شو .

موږ به دې سره وياړو او د خپلو
نيکه ګانو د قرباني ستاينه کوو
چې د ژوند د اسبابونو د نه
درلود او سره ئې بيا هم د استعمار
ستر طاقت مات کړ او خپل
بشري حق ئې لاس ته راووړ، له
ده په هغو وختو موږ د خپلې ملي
ازادي خاوندان شو او د مدني
ژوند د نيمګړتياو په پوره کولو
مو لاس پورې کړ اوس چې
څخه بيا تر ن پورې زموږ د
ژوند د ښه کېدو په لار کې ښا-
يسته ډېر کارونه شوي دي په
تېره بيا د اعليحضرت المتوکل
على الله محمد ظاهر شاه زموږ د
محبوب او اواك په فرخنده عصر
کې د ژوند ډېر مظاهر راغونډ
شوي او ډېرې نيمګړتياوې
پوره شوې دي په دې روښانه
عصر کې د ملك معارف؛ اقتصاد
تجارت، زراعت، ترانسپورت
او د ژوند نور مدني اړخونو
ته خورا ګلکه توجه شوېده
چې د هغې د شيانو د انکشافي
اغېزو له اثره اوس د مملکت په
هر ګوټ کې د ترقي او تمدن
آثار ليدل کېږي او موږ ته د پوره
روښانه مستقبل زېري راکوي
په تېره بيا د ښاغلي سردار محمد-
داؤد د صدراعظم په حکومت کې
د بېطرفې او د آزاد قضاوت د
سياست په رڼا کې د انکشافي
پلانو مهم اساسونه تعميم شوي
او د اجتماعي نهضت پلوشې
خپرې شوې دي معارف په پې-

ساري دول پراخښيا مومي او صنايع مو خپل توليدات عرضه کوي د سړکانو د جوړېدلو کار په ډېره بېړه جاري دی د الوتکو پروازونه د مسافرانو او مال التجاري د وړلو او راوړلو په غرض فضا ښايسته کړي او په هرځای کي دالوتکو ميدانونه په بشپړ شوي او يا ئې تر تعمير لاندې دي .

بله غټه موضوع چي د ښاغلي صدراعظم د حکومت په وخت کي ورته ډېره پاملرنه شوېده هغه د پښتونستان د خودارادیت مسئله ده دا مسئله د افغانستان د حال او استقبال دپاره ژوند او مرګ اهميت لري نو ځکه نوموړی سردار چي د مملکت فداکار او سياسي غوره شخصيت دی د دې موضوع د حصول په لار کي ئې ډېر زحمت ګاللی او د ستونځو سره مخامخ شوی دی خو اوس چي موږ د خپل استقلال خاطره نوی کوو دا وي خدای څخه دا التجا کوو چي زموږ پښتونستاني ورونه هم د خپل سرنوشت خاوندان او د ښادو ورځو څښتنان کړي .

په پای کي د افغانستان د خپلواکۍ او د ترقي دپاره د اعليحضرت محمد ظاهرشاه تر سيوري لاندې لاسونه پورته کوم او د استقلال د لارې د شهيدانو و پاکو اروحو ته د زړه له کومي سلامونه وړاندې کوم . ام ، کرزی ،

# مرګیه

مرګیه ! ای د ژوند د روستني وفا ! راشه او زما سره بې خبري وکړه .

ورځي، ورځي تيري شوي چي زه ستا په انتظار کي ناست يم ستا په خاطر زه د ژوند مصيبتونه او خوښۍ ګالم .

څه چي زه يم، څه چي زما آرزوګانې، او هرڅه چي تر اوسه لرم حتى زما د عشق پټ راز دا ټوله تا ته ګوري . ستا د سترګو يو کاته به زما ټول ژوند د هميشه دپاره ستا کړي . ګلونه وپيوهل شوه

امیل د ناوي دپاره تيار دی، تر واده وروسته به ناوې خپل کور ته رهي دی او د خپل څښتن سره به يوازي د توري شپې د تنهائي په کوټه کي يوځای شي .

[تاګور]

ښاغلي عبدالباري «آشنا»

# په ادبیاتو کې د محیط تاثیر

د هغه نه تر ټا کلي موضوع پاڼې وار د محیط په شاوخوا کې لنډه وزغېږو بیا به په اصل مطلب پیل وکو:- محیط عبارت له هغو شیانو څخه دی چې بو سړی په خپل ژوند کې د هغه سره هر وخت او هر ګړی مخامخ وي او ور بط ور سره ولري نو دا شیان مادي که معنوي وي مثلاً د اسې ګنو ځای، عصر، زمانه، آب وهوا یعنې د هغه ځای سړه والی، تودوالی، خوراک، څښاک، عادات، رسومات، دین، مذهب، حکومت آزادي، اسارت، نول به محیط سره تعبیر کېږي دا عوامل انسان ته ډېر تاثیر لاندې نیسي پر روح او جسم دواړو ئي کلکه اغیزه لري مرحوم «بهار» د ایران ملک الشعرا ئې د دې عنوان لاندې [تاثیر محیط بر ادبیات] محیط داسې تعبیر وي :-

[ نول طبیعي موثرات لکه آب وهوا، غذا او ځای او د هغو منتسبه او مربوط عوارض لکه دیني، سیاسي، علمي، افکار او تاریخي حوادث او د هغوي مربوطې نتیجې لکه غالبیت او مغلوبیت، لېږد پدنه ګډون او نورچې د یوه ملت محیط ګڼل کېږي هر کله د یوه ملت پر ادبي آثارو، اخلاقي او عمومي افکارو تاثیر اچوي او یو مخصوص رنګ او څوک ورکوي.

اوس به پېر ته خپل مراد ته راشو ښکاره ده چې د مختلفو او بېلو ولسو ادبیات او یا د یوه ولس ادبیات د هغه ولس د څو اند به *



*مختلفو پېړو او بېلو مرحلو کې د تخیل، اسلوب، مادي او معنوي حالاتو او کم او کیف په لحاظ سره جلا او غټ توپیر اري او دا اختلافات هر وخت موجود او ښې کېدلای چې د دوملتو ادبیات دي له هر څیښه سره یوشي او برابر وي، ښه!

نو دا ادبي جلاوالي کوم داسې عوامل اري چې هر وخت د دغه اختلاف سانو نکي او علل و بلل سي؟ هو! په ټره کې هیڅ معلول بې علته نه وي نو دا ادبي اختلاف هم چې د یوه ملت ادب ئې د بل ملت د ادبه سره اري باتي د یوه ملت د یوې دورې ادب د بلې دورې سره اري ضرور علل او موجبات اري چې ادبیات د هغو تر تاثیر لاندې دي او د هغو د اغیزې په سبب جلاوالي مومي چې مهم ترین عامل ئې محیط بلل کېږي، د محیط اغیزه نه یوازې پر ادب ده بلکه انسانان هم له دغه تاثیره ځان نسي ژغورلای مثلاً معلومه خبره ده چې د تودو ځایو خلک د خپل طبیعي محیط د تاثیر په سبب سست او بېکاره وي ځکه چې دغه دول محیط دا انسان

فعالیت کمزوی او به نتیجه کې
انسان تنبل او بېکاره وي خو
د سړو ځایو تاثیر بیا د تودو ځایو
د تاثیر څخه جلا او بېل دی او
هلته خلک د کار او زحمت په
واسطه چې د هغه محیط تقاضا
ده ډېر تنکره او فکري و جسمي
قوت ئې نسبت د تودو ځایو و
خلکو ته ډېر وي په معتدلو
مناطقو کې بیا دا تاثیر بل ډول
وي او د غره ژوندون بیا له دغه
څخه هم جلا او بېل تاثیر لري
دغره او سېندونکي تل د طبیعت
سره لاس وګرېوان دي او دا
ډول ژوند نه یوازې پر جسم
تاثیر لري بلکه پر روح هم اغیزه
کوي، زړه ور توب او د آزاد
ژوند حس قوي کوي، دغه رنګه
د ساحل او جزیرو خلک بیا د
مخصوصو عاداتو او بېلو اخلاقو
خاوندان وي.

نو څرنګه چې محیط او ماحول
د انسان پر جسم، اخلاقو
عاداتو او ټولو سجایاؤ اغیزه
لري دغه ډول پر شعر او ادب چې
د انسان د احساساتو او افکارو
مولود وباله سي کلکه اغیزه
اچوي او تر خپل تاثیر لاندې
ئې راولي او لکه دیسوه ملت
خلک چې د محیط اغیزې به
سبب د بل ملت د خلکو سره اخلاقي، شکلي او فکري توپیر لري
ادبیات ئې هم په دغه اندازه یو د بل سره بېل او جلا شکل لري.
مثلاً که د مختلفو ملتو پر ادبیاتو یو نظر وکړو نو معلومه به سي
چې یونانیان په خپلو ادبیاتو کې ډېرو کومیډي او تراجیدي درا-
مو ته متوجه وه، هندیان په ادب کې د استعارو او غریبو تشبیهاتو
او قصه ویلو څخه ډېر کار اخلي، پارسیانو و غنائي او تصنعي
اشعارو ته توجه کړېده، او رومیانو بیا خطابې ته ډېر اهمیت
ور کاوه، دغه ډول د عربو په ادبیاتو کې فخر او حماسه ځای لري
او د پښتنو په ادبیاتو کې تل د آزادۍ او طبیعت قوي روح نغښتی
وي بدې ډول که د ملتو و ادبیاتو ته ځیر شو دا ډول غټ خصوصیات
او بارز ممیزات ډېر لیدلای سو.

دغه رنګه اجتماعي محیط (تاریخ، دین، اخلاق، ژبه، اقتصاد
سیاست او ....) هم ادب تر خپل تاثیر لاندې نیسي جلا رنګ او
بېل خوند ور کوي مثلاً مغلوب ملت چې د اسارت جغ ئې پر غاړه
پروت وي فکري مظاهر یا ادبیات ئې د حماسي او رزمي خوا څخه
خالي وي، د اوړوالي یا پهلوانۍ او مړانۍ تر ځای نه اخلي د فکري
ترلرشانو موضوع ئې صبر، د دنیا او عمر بېوفائي .... وي مګر د
یوه بریالي او غالب ملت شعري او ادبي روح بیا بل ډول او بېل
خصوصیات لري په ادبیاتو کې ئې جنګي او حماسي اشعار ډېر
ښکاري خپل بریالیتوب، د دښمن ماته، د جنګ میدان یاد خپلو
تورو بریدنې د اشعارو محور وي، یا د یوه متدین ملت ادبیات او
اشعار تل د دیني او مذهبي قوانینو ارشاد کوي او په هره اندازه
چې ئې دیني پیروي او مذهبي پابندي ډېره وي په هغه اندازه ئې
مذهبي افکار په ادبیاتو کې ښه بریښي الهي څخه معلومه ده چې
اجتماعي محیط د یوه ملت په ادب باندې ډېره اغیزه لري د دې
مطلب د اثبات د پاره که یوازې د پښتو ادبیات په مختلفو دورو کې
مقایسه سي او د هرې دورې په ادبیاتو کې د محیط اغیزې وکتل
سي نو به دا ښکاره سي چې محیط تر کومې اندازې موثر دی
مثلاً د پښتو ادبیات په لومړۍ دوره کې یعني د اسلام له پیله بیا

د ۹۰۰ یا ۱۰۰۰ هجري پوري هغه خصوصیات اري چې په راوروسته دورو کې نه پیدا کېږي خاص بیا هغه اشعار چې په دوهمه، دریمه او څلرمه هجري پېړیه کې ویل سوي دي ددې دورې اشعار و ته چې گورو اوزان ئې تول خپل دي، ژبه ئې سوچه ده، اسلوب ئې ساده او طبیعي دي، لیری تشبیهات کنائې او استعارات پکښې نشته، فخر و یارنه حماسه او عشق ئې مهم موضوعات دي، په عمومي ډول ددې دورې ادب د طبیعت په دائره کې په ساده او طبیعي ډول د پښتنو آمال او آرزوگانې ښکاره کوي، مستقل اوزان او مخصوص سبك اري لکه د امیر [کرور] ویارنه چې د پښتو د شعر په مخصوص وزن، سوچه او شعري ژبه ویل سوې ده :-

زه یم زمري پردې نړۍ له ما اتل نسته
په هند و سند و په تخار او پر کابل نسته
بل په زابل نسته
له ما اتل نسته

غشی د من مې ځی بریښنا پر میرځمنو باندې
په ژوبله یونم پر غالم پر تښتېدونو باندې
په ماتېدونو باندې
له ما اتل نسته

زما د بري پر خول تاوېږي هسك په نمنځ و په ویاړ
د آس له سو و مې مځکه رېږدي غرونه کاندم لتاړ
کړم ایوادونه وېجاړ
له ما اتل نسته

زما د توري تر شپول لاندې دي هرات و جروم
غرج و بامیان و تخار بولي نوم زما په اودروم
زما پېژندي پم په روم
له ما اتل نسته

دا شعر تر بابا په دعوی سوچه پښتو ویل سوي دي او بو پردی لغت پکښې نسته دا اجتماعي محیط یعني د نورو ژبو د تأثیر څخه خلاص دي، پښتو ئې سوچه او لغات ئې تول خپل دي دافکار و طرز ئې طبیعي او ساده دي او په ملي وزن ویل سوي دي، مگر په دغه دوره کې تر امیر کرور پوره پېړیه وروسته چې د عربي ژبې لغوي او ادبي اغیزې د پښتو و ځینو ادبیانو ته رسېدلې دي نو عربي فکر او رنگ په هغو کې ښکاره دي لکه دا بو محمد هاشم شعر چې د عربي شعر څخه ئې اخذ کړی دی او هغه ئې په پښتو اړولی دی :-

ژبه هم ښه و ینا کاندي چې ئې وینه
د خاوند په لاس کې زر او درهمونه
ژبور وراه راجـي وینا ئې اروي
د درهم خاوندان نـل وي په ویارنه

که څه هم پدې شعر کې د پښتو پخوانی لغات او نوا پیر سته خو بیا هم د عربي فکر او عربي ژبې لغات پکښې ښه ښکاره دي، خو هغو ځای و نه چې د عربي یا پارسي ژبو اثر ندی رسېدلی که څه هم په زمانه کې تر هاشم وروسته دي بیانئې هم ژبه د ماحول له اغیزې پاکه ده، فکر ئې خپل دي او لغات ئې تول خپل دي لکه د بیټ بابا مناجات :-

لویه خدایه، لویه خدایه
ستا په مینه پسه هر ځایه
غر ولاړ دي درناوي کې
تو له ژوی په زاری کې
دلته دي د غرو لمنی
زموږ کېږدی دی پکښې پلنی
دا وکړي دېر کړي خدایه
لویه خدایه! لویه خدایه

په دې شعر کې پردې کلمه نشته او فقط د خدای مشترکه کلمه لري، لهذا داچې که څه هم دې دورې په آخر کې د پارسي او عربي ژبو اغېزه ښکاره ده خو سره له هغه پښتو ژبې خپل متانت او سوچه والی د مرې د لاسه نه دی ورکړی لکه په وروسته دوره کې مګر دوهمه دوره چې له ۹۰۰ هجري څخه شروع کېږي او ۲۰۰ کاله دوام کوي په دې دوره کې د پښتو ادبیات له دمخنۍ دورې څخه تقریباً له هر حیثه بېل دی ځکه چې په دې دوره کې د اسلام د خیر پر دو سره مذهبي افکارو عمومیت پیدا کړی دی او علاوه پر هغه د عربي ژبې لغات او د شعراو زان په پښتو ادب کې ځای سوي دي د پارسي ژبې اغېزه هم په دې دوره کې ښکاره ده ځکه چې دا د مغولو زمانه ده د پښتنو او مغولو د جنګ وخت دی نو په دغه سبب جنګي او حماسي اشعار ډېر لیدل کېږي خصوصاً د خوشحال خان په اشعارو کې د دغه جنګو تأثیر ښه ښکاره دی او د لومړۍ دورې د ادبیاتو سره ئې د لفظ او معنی له حیثه غټ فرق پیدا کړی دی،

دغه رنګه دریمه او څلرمه دوره هره یوه بېل خصوصیات او ممیزات لري او یوه د بلې سره نسي تطبیق کېدلای چې ددې اختلاف مهم سبب د محیط اختلاف او اغېزه ده.

دغسې هم د پارسي ادبیات د محیط د تأثیر په سبب د یوې زمانې دا د بلې زمانې څخه فرق لري او په دغه لحاظ پر څلور مختلفو دورو وېشل سوي دي او هره دوره ئې بېل خصوصیات لري چې د پارسي ادب څلور مهم سبکونه لکه خراساني سبک، عراقي سبک، هندي سبک او نوی سبک هم ددې ادعا ښه مصداق دی، دغه رنګه په اروپائي ادبیاتو کې د محیط او ظروفو مکان او زمان اغېزه ښه ښکاري او د هغو د ادبیاتو مختلف سبکونه لکه کلاسیک رومانتیک، ریلیزم، نیچرلیزم سمبولیزم او نور دا ثابتوي چې محیط څومره په ادبیاتو کې تأثیر لري له یوه دوله ئې بل دول ته اړوي په موضوع عبارت، معنی او الفاظو کې تغیر راولي او په هر څه ئې لاس وهي.

## ښکلا

ښکلا حقیقت دی او حقیقت ښکلا. [...]

یو ښکلی شی جاویداني نشاط دی. [جان کیټز]

ځینې خلک مېوې نارسېدلې او اومې خوري، ښکلا هم اسې دې مېوو څخه ده. [الفونس کار]

د نر ښکلا د ده د ژبې فصاحت دی. [...]

د ښځې ښکلا د دې هنر او کمال دی. [...]

د نر ښکلا په دې کې ده چې له هغو شیانو څخه لیرې شي چې د ده سره ور نه وي. [...]

په نړۍ کې د ښځې تر ښکلا بل موثر معلم او ښوونکی نشته. [شکسپیر]

ښکلې ښځه سترګو ته لذت بخښي او نجیبه ښځه زړه خوشاله کوي، او هغه ئې نه پیودل شوې مرغلره ده او دوهمه ګرانبها خزانه ده. [بالزاک]

ښکلا بې دوامه ظلم دی. [سقراط]

ښاغلی م، عطائي

# نن د خلکو هغه ادبیات خوښ دي

## چې د واقعیت په چوکاټ کې وي

ادبیات د دې عصر د ژوندانه په برخه کې د ېر لوی رول لوبوی. یو شاعر لیکوال دا خبره ډېره ښه ځای کړېده چې د اوسني ژوند لپاره ادبیات د مالګې حیثیت لري، لکه په خوړو کې چې مالګه یو لازمي شرط دی، همداډول نن ادبیات د ژوند لپاره ضروري شرط ګرځېدلی دی.

نن چې د نړۍ په نورو برخو کې کوم تحول راغلی او لا دا ترقۍ د تکامل پر لوري و باچټکۍ ښې روانې دي، نو هغه په ادبیاتو کې هم ښه برخه لري او نن ادبیات دومره مترقي دي چې د انساني ټولنو د پېشرفتو سره پوره همغږي کولای شي.

د ادبیاتو ترقي د اجتماعي شرایطو د بدلون سره په وجود راغلې ده، لکه نن چې بو شمېر بشري ټولني د اجتماعي ترقیو په لور کې پر واقعي لار روانې شوي، نو د دوی ادبیات هم د واقعیت چوکاټ ته واوښتل.

کوم ادبیات چې نن په مترقي ټولنو کې بالل کېږي هغه ریالیزم (واقعیت) د مکتب پیرو دي. دا مکتب چې د اوي پېړۍ د لیکوالو له خوا په وجود راغلی غواړي چې اجتماعي منظرې په واقعي ادبیاتو کې ځای کړي او همدا وجه ده چې د خلکو زیاته علاقه او دلچسپي ئې جلب کړېده.

د ۱۸ او ۱۹ پېړیو استعماري او امپریالستي اوضاعو په ادبیاتو کې داسې تاثیر وکړ چې هغه ئې بریوه نوې لار برابر کړه او دا لار د راتلونکو دورو د افرادو د زړه سره تړلې ده.

که څه هم د پخوانیو ادبیاتو خیال پرستو [رومانتیك] لیکوالو ډېر زیار وایست چې د ریالستك ادب مخه ونیسي خو څرنګه چې دا ادب د دوران نو له بطن څخه راوتلی و او د نوي عصر د نوي مغز و محصول و نو دا وو چې په تام موفقیت پر لار روان شو او لا پرمخ ښې درومي، په ریالستك ادب کې تر ټولو د مخه انتقاد ضرور دی، یعنې یو لیکوال که غواړي چې کوم ادبي مضمون ولیکي باید مخ کې تر هغه د هغه نتیجه د خلکو پر ژوندانه وګوري او د اجتماعي جریان هغه پټ اړخ تفسیر کړي چې د افرادو له نظر څخه وتلی او ضمناً د هغه بد اړخ ته تنقید وکړي.

دلته د یو توریوستي افریقائي لیکوال یوه ادبي پارچه را اوړو چې د استعمار خیلي ژوند حکایت کوي. دا لیکوال د افریقا د تورو کوډي چې تا پخوا نو هیڅ ېږي او نو کو څو نو هغه مشکله وه چې د یورپ خلك به راتلل او د دې ځای خلك به ئې ښکار کول او څرنګه چې دا خلك ډېر قوي او غښتلي وه نو هغه به ئې

دلوبو فابریکو او کښتیو پر
مالکانو خرڅول نو کوم
داسې مار کېږي چې همېشه به
انسانان پکښې خرڅېدل.

داده هغه پارچه چې نوموړې
لیکوال لیکلې او د انسانانو د
ښکار یوه منظره څرګندوي
[ دزړغونو بوټو له هاخوا څخه
پرموږ د سره او وریاران چوړ سو
بوګری لانه نږ نږه سوی چې د
اسمان شین مخ خړو دودانو
ونیوی... زموږ د کښتۍ الوڅخه
څوښځې او واړه د بوګرۍ له
مخې په سرو وېښو کې لت پر
لت واوښتل.

د کښتۍ خړو خیل یاروته وغوږ-
ځول او په کښتو کرورو اتونل
دهغو چړ ګړ غالمغال یو وحشت
ویاخاوه چې دخسرو پر پارو
پر سپېره نزل شوی وه.

موږ ټول له سمدستي پوه سوو
چې واقعه د څه قراره ده او
داراته معلومه شوه چې دمدنیت
دانسان وژونکو ښکاریانو
په پنجه ورغلو.

هغه پیشبینې په سخې درسته
شوه چې زموږ مېړونو د کښتۍ
توارلو په وخت کې کړي وه
او دلاري پرهر پېچومې به نې
داحتیاط اختیار راکاوه د
خړو دودانو له منځ څخه څو
سوربوړمي چاغ او په غوښو
پټ خلک راښکاره سوه چې
هر یوه په زوره، زوره خندل
دوی په اشاره زموږ ځوانان
او د غښتلو مړو خاوندان
له ښځو او وړو څخه بېل کړه
او موږ تانې په کلکو تناو ور
وتړل او د ځان سره ئې
بوتلل.

بوې مېرمنې بدې وخت کې
خپل مېړه ته په ډېر زړلې
آواز ورناري کړه: بوار مخ
واواړوه چې....

چې ودی وېښم: آه.... بیا څو
توږه اوښکې تعسو سره لېدلای].
داپارچه رښتیا یو واقعي ادب
تمثیلوی او دیو داسې ظلم حکا-
یت کوي چې هغه درد په هر
ځای کې د خلکو احساس
پاروولی شي.

څو تشي ادبیات پایدو واقعیت
په بوش کې وي او تنقیدی روح
بایدولري ځکه خالص هغه داسې
ادب خوښ اری.

# شلوریځه

کله چې نسه وای، زه در سزه وای
د میوزمی شپه وای شپه هم بڅه وای
پټ کې روانسو او پسو پر غاړه
د خوب په دکو سترګو کسانه وای

«عبدالهادی هوتک»

بناغلی «رشاد» [د کندهار نومیالی]

# سید نور محمد شاه

## صدراعظم

کله چې د استعمار باداسکو غوښتله چې د شرق په یوه د مغربي تابه د گرداب په کومې نښاسې د استعماري متجاوز یښو له خوا د افغانستان د سیاسي ژوند او اجتماعي ترکیب د سلب او تجزئې لپاره هم بلهبوری او غیښتلي کوښښونه جاري ؤ او مادي خاوري د همدغه کوښښو د برخلاف مجادلي د ملک د ننه او بهر مېړونه ورانه دي کړل چې یو له هغو شخصه سید نور محمد شاه یو شنجر (پښینګی) دی .

موږ به تاریخي صفحاتو کې د دې سیاسي شخصیت د نامه سره د امیر شیرعلیخان په دوهم امارت ۱۲۸۵-۱۲۹۶ کې آشنا کېږو او رانه څرگندیږي چې د مرحوم امیر شیرعلیخان د دوهم امارت په نهضت، ترقي او سیاسي فعالیتو کې د دې شخصیت لویه برخه وه .

[د ده صدارت] د ۱۲۹۰ هجري کال د روژې په ۲۵ ورځ امیر شیرعلیخان د یوې اوه کسیزې اساسي او منظمې کابینې تشکیل وکړ چې په هغه کې ئې سید نور محمد شاه پښینګی د صدارت لپاره وټاکه که څه هم بخوا تر دې تو مونږ د امیر شیر-علیخان له اهمو او ورنږدو همکارانو څخه و اما له دغه تاریخ څخه د ده لقب رسماً [صدر اعظم] یا [ اوی تول مختار] تعین شوی دی [شمس-النهار] چې د امیر شیرعلیخان د عصر یو اخبار جریده ده اخبر داسې لیکي :-

ترقی مدارج در افغانستان

قدیمان خود را بر افزای قدر
که هر گز نه بیني زبرور ده غدر

چونکه از عرصهٔ دراز منظور نظر کیمیا اثری بندگان اشرف امر صاحب بهادر خلدالله ملکه چنان بود که اشخاصیکه از قدیم معروف خدمات بوده در انجام امور مأموره خود کوتاهی نورزیده اند و بیرامون ابیاری شجر بی ثمر غداری نه گردیده علی الدوام سررشتهٔ اخلاص را از دست نداده ترقی اوعان بمناصب جلیله گردد شود و نیز چونکه الحال نظم و نسق مملکت به نسبت سابق زیاد گردیده ترقی و رفاهیت و امنیت رعایا بظهور رسید بنابر ظهور خیال مبارک به تاریخ ۲۵ ماه رمضان المبارک یوم دوشنبه سال ۱۲۹۰ ترقی اشخاص ذیل به مناصب رفیعه بظهور رسید .

[اعلی]

عالیجاه رفیع جایگاه عزت و سعادت دستگاه سیادت پناه سید نور محمد شاه صاحب را که عرصهٔ دراز سرگرم خدمات نبایستهٔ دولتی بوده در انجام امور مأمورهٔ خود حتی الوسع دریغ نفرموده و نیز شخص نجیب الطرفین از اعاظم سادات پشین متعلقهٔ قندهار و ملازم

قدیم این سلطنت و در دیانت و لیاقت ممتاز بوده به عهده رفیعهٔ جلیلهٔ صدراعظم و مختارالملك دولت افغانستان مقرر نموده به خلعت فاخره سرافراز نمودند ترجمهٔ القاب اوشان در زبان سلابت بنیان افغانی «لوی تول مختار» است .

دهغه عصر دشعراؤ په هغو قصایدو کی چی د هغه دي موضوع په وصف کی لیکلی شویدی راوړی .

محمدجان وائی :-

چون شد آراسته مانند عروسان

این بزم

گشت هر هفت از آن هفت وزیر

بساشان

شاه ما هیبت بگردون جهان

آرایی

سبعه سیاره اش هفت وزیر ای

یاران

اولش «نور محمد شاه» و

صدراعظم

تول مختار بود منصب آن والاشان

واصل وائی :-

محفل عیش به هر گوشهٔ آراسته

شد

خاصه در مجلس مینوش این

هفت وزیر

صدراعظم که بزرگان جهانش

خوانند

«لوی مختار» فلك قدر فلاطون

تدبیر

رشیدوائی :-

علی الخصوص وزیران صاحب

تدبیر

که نامش برقم بود چون قمر

تابان

نخست «نور محمد» لوی تول

مختار است

خطاب دیگر آن او صدراعظم

خوان

د سید نور محمد شاه سیاسی

فعالیتونه

## دانبالي کنفرانس

په ۱۲۸٦ هـ کال کی امیر شیرعلیخان دهند دویسرا [لارډ مایو] له خوا ددوستانه روابطو د ټینګار د خبرواترو لپاره امبالې ته محترمانه دعوت کړه شو دا کنفرانس هلته د ۱۸٦۸ عیسوی کال د مارچ په ۲۷ ورځ افتتاح شو دافغانستان له خوا یخپله امیر شیرعلیخان او سید نور محمد شاه او د انګریزانو له خوا [لارډ مایو] د هند د وایسرا د ملکه ویکتوریا د نمایندہ په حیث لارډ ایپر دهند لوی سپه سالار او سیتن کار د هند خارجه وزیر بدي کنفرانس کی امری ورخ ګډون دراود دي کنفرانس نور مجلسونه د سید نور محمد شاه او سیتن کار [دهند دخارجه وزیر] ترمنځ د ډاکټر ګری په ترجمانی وشول اما د سید نور محمد شاه پنځه ورځی مسلسل اصرار او کوښښ ونه کړای شوای چی انګریزان د ښېګڼې پیشنهاداتو دیوې مادي ملاتړ ته حاضر کړي .

دا کنفرانس ناکام شو او امیر شیرعلیخان او سید نور محمد شاه بیرته کابل ته راستانه شول .

## د سیستان شخړه

په ۱۲۸۸ هـ کال کی دایران سره د سیستان د سرحد او د هلمند د اوبو دویش لپاره دافغانستان له خوا سید نور محمد شاه سیستان ته ولاړ هلته تر ایرانی هیئت علاوه دانګلستان یوه داله هم د حکمیت په غرض حاضره شوې وه مشهور غرېنې سر ریچارډ ګولډسمټ ددې انګلیسي هیئت ددې لپاره چی دایران او افغانستان ترمنځ دتفرق زړی وکړی او ددې پیلتون له امله د شرق مقاومت دخپلو استعماری پلانو په مقابل کی لاپسه ضعیف کړی پیله کوم ناروغی او حقوقی حق ځغلني د هلمند په کښته نیو اوبو کی ایران د

۵۰ میلو په اوږدو شربك و كانه سید نور محمد شاه او امیر شیرعلیخان ددې حکمیت پر ضد احتجاج وکړ انګلیسانو د امیر شیرعلیخان د نرضیې لپاره پنځه لکه روپۍ له خپلې خوا امیر صاحب ته وړانـدې کړي اما امیر صاحب دهغه له قبول څخه انکار وکړ او داخپل احتجاج ئې پر ښوود سید نور محمد شاه پدې سفر کې دطهران دربار ته هم ولاړ او بیرته د بحیرهٔ عرب او بمبئی له خوا کابل ته په خوراچټکې راستون شو.

## د سملې کنفرانس

څـکه چې امیر شیرعلیخان د سیستان په شخره کې دا انګلیسی هیئت ناجـایز او منافقانه حکمیت لـه انګلیسانو څخه خوابدی کړی و نو دهندوایسرا [لارډ نارت بروك] ددې خوابدیو دازالې لپاره دامیر صاحب څخه وغوښتل چې یو انګریز نماینده دی پوبلا کابل ته پر ښوول شي چې هلته د امیر صاحب سره ووینـی.

امیر صاحب د انګریزانو دا غوښتنه په یوه عام دربار کې ملت ته وړاندې کړه او داسې فیصله وشوه [دا انګریزانو اما- بنده دې کابل ته نه پر ښوول کېږي] نو امیر صاحب د سملې کنفرانس ته له خپلې خوا سید نور محمد شاه وټاکه او سید نور محمد شاه هم د ۱۲۹۰ کال دصفری په میاشت کې [۲۵ د اپریـل ۱۸۷۳ عیسوی کال] سملې ته وخوځید هلته ئې خورا ښه او محترم هرکلی وشو د ۱۲۹۰ کال د دوهمې خور یعنې پر پنځمه دجولائی د ۱۸۷۳ عیسوی کال ئې دهند دوایسرا لارډ نارت بروك او دهند دخارجه وزیر [ایچ زن] سره ئې ولیدل او د سیستان په شخړو کې ئې د انګلیسی هیئت ناانصافی وغندله او د روسانو د سریع پېشرفت خطرات او د افغانی عسا کرو د پوه اژر او غښتلی تسلیح او تجهیز ضرورت ئې په خورا سیاسی مهارت اظهار کړ کوم چې انګلیسی هیئت په مزار هرات او کندهار کې د خپلو حربی او سیاسی نماینده ګا و د قبول غوښتنه وکړه سید نور- محمد شاه وویل زه باور نلرم چې امیر صاحب به ستاسی دا غوښتنه ومنی زه چې دهند د حکومت په پلمه سرف د نرطا- نوی دولت دهیلو او آرزوګانو داورېدلو لپاره دلته راغلی یم د هیڅ یوې قطعی فیصلې واك نه لرم.

د ۱۸۷۳ عیسوی کال داګست په میاشت کې سید نور محمد شاه بیرته کابل ته ستون شو.

## د پېښور کنفرانس

د ۱۲۹۱ ه کال دذی الحجې په میـاشت کې سالسبوری [ د انګلستان په کابینه کې دهند وزیر] دهندوایسرا نارت بروك ته فارورد پالیسی (دپیش قدمی د سیاست) تلقین وکړ؛ نارت- بروك دهندوایسرا دافغانستان خواته د پرمختګ د سیاست مخالفت وکړ او دهغې مخالفت په سبب د ۱۲۹۳ کال د محرمی په میاشت کې دهند د اعلی حکومت څخه مستعفی او ځای ئې لارډ لیټن ته وسپارل شو سمدستی انګریزانو خپلې لښکری پـر بلوچستان را وبهولې او کویټه ئې چې د ۱۲۵۸ کـال راهیسی د هغې معاهدې له مخې چې د قلات د خان میر نصیرخان او افغانستان ترمنځ شوې وه او د افغانستان جزو وه ونیوله او هلته ئې یوه عسکری قشله هم ودانه کړه

او به وزیرستان کې هم دیوي عسکري ودانۍ لپاره سړي والېږل برابا سین ئې خوشالګړ ته نژدې یو پل ودان کړ او د کشمیر مهاراجه ته ئې د ګلګت له لارې د چترال خوا ته د فوج د لېږلو امر وکړ.

لارډ لیټن له هري خوا په افغانستان کې د سیاسي او حربي نمایندګانو د منلو لپاره خورا سخت فشار راووړ. ځکه نو امیر شیرعلیخان یو سیاسي هیئت د سید نور محمدشاه صدراعظم په مشرتیا په دوکماره چې پېښور ته ولاړ شي او هلته د انګلیسي واکمنو سره د برطانوي مطلبانو د نه منلو د مجبوریت په شاوخوا کې وغږېږي دا کنفرانس د ۱۲۹۴ ه کال د صفري په لمړیو ورځو کې مطابق له ۳۰ سره د جنوري د ۱۸۷۷ عیسوي کال په پېښور کې منعقد شوی دی کنفرانس کې انګلیس پیلي برطانوي نمایندګان د افغاني هیئت د مشر سید نور محمدشاه د دلایلو په مقابل کې د پر ځواله ناکام شو دا کنفرانس پسله شاووړ ځو څخه ددې لپاره چې طرفین د خپلو آمرینو څخه نوي هدایات واخلي د مارچ د ۱۵ تاریخ پورې معطل شو د ۱۲۹۴ ه کال په لمړي خور کې چې د هندوا پسرا جواب انګلیس پیلي ته راورسېدله لا د کنفرانس د ناکامي او د افغاني هیئت د یأس لپاره باعث شو اما سید نور محمدشاه افغاني صدر اعظم ددې ایلک پراخېستلو سره

بېره بیا هم ټینګه چې د برطانوي هیئت سره د هغو د مفاهمې لپاره نوري هم خبرې اترې پیل اوږدې کړي اما انګلیس پیلي انکار وکړ وې ویل د وابسرا امر قطعي دی په دې ترځ کې سید نور محمدشاه ناروغه شو امیر صاحب ددې لپاره چې د مذاکراتو سلسلې ونه شلېږي حبیب الله خان لوی ملك (مستوفي الممالك) ئې پېښور ته د سید نور محمدشاه پر ځای ولېږه

اما د افغاني مستوفي لا نه سرحد ته وو رارسېدلی چې انګلیس پیلي د وابسرا د مارچ د ۳۰ تاریخ د قطع ټلګرام په اثر د ده ته د کنفرانس ختم اعلان کړ.

## دده وفات

لکه څنګه چې پورته ویل شوي دي سید نور محمدشاه په پېښور کې ناروغه شو او هلته د همدغې

ناروغۍ او روحي فشار په سبب د لمړي خور په ۵ مه ورځ کې د ۱۲۹۴ ه سنې چې مطابق له

۲۷ سره د مارچ د ۱۸۷۷ سنې کېږي وفات شو د امیر شیرعلي خان په امر ئې جنازه له پېښور

څخه کابل ته راوړه شوه او د بك انګه په کوټل کې ئې د امیر په امر د سلطنت ولیعهد

شاهزاده عبدالله جان او د سلطنتي ارا کینو په او په دله مخې ته ورغلل او دا د وطن پوه رښتین

وزیر ئې په خورا عزت او احترام د کابل په شهدای صالحین کې خاورو ته وسپاره

خدای دې وبخښي.

## کورنۍ او اولاد

مرحوم سید نور محمدشاه د

سید سلیمان شاه ځوی د پښې ځوی دی نسبي سلسله ئې تر کرمه ځایه چې ښکاره ده داسې ده

سید نور محمدشاه د سید سلیمان

شاه د سید بیګ محمد شاه (سید بیګی) د سید موسی د سید صدو د سید موسی د سید نوری د سید علی د سید میران د سید رسول

د سید حامد زوی دی چې د ښځینو د شین غری سیدانو سترمشر ؤ او د ښځینو د علیزیو د مغزلی کاریز امر او بدرز پلو ته په

شین غری کلی کې او سېږد د سید نور محمد شاه اکا سید زمان شاه نومېدی چې مرحوم سید عطا محمد شاه مشهور خط ط ده لمسی ؤ .

د سید نور محمد شاه بېګڼی ورونه سید ګل محمد شاه سید امان الله [چې په کرچنیوالی کې مړ دی] او میرزی ورونه ئې سید یعکر

سید رحمت، سید یوسف، سید کریمداد او سید عبدالله ؤ .
سید ګل محمد شاه ئې د امیر عبدالرحمن خان په امر مړ او

د مرنجان د ښي په امن کې ښخ کړ شو، د سید نور محمد شاه زوی سید محمد نومېدی چې د سراج-

التواریخ [ ] جلد په [ ] مخ کې ئې هم ذکر راغلی دی
د سید محمد پنځه زامن وه

وه نومونه ئې دادی
سید عبدالشکور، سید عبدالقدوس سید عبدالصمد، سید عبدالاحد سید عبدالرسول ؤ چې د سید

عبدالرسول زامن ئې سید عبداللطیف او سید عبدالمجید نومېږی اوس هم په کندهار کې ژوندي دي .

د امیر شیرعلیخان خطونه د سید پنامه لههغو خطو څخه چې د امیر شیرعلیخان لهخوا د سید پنامه لیکل شوي دي دوه خطونه

د سید په کور کې ساتلی شوی دي .

[اومړی لیک]

تقطیع ۵×۸ انچه سپین کاغذ

خورا پېکه لیکی اری ددې خط پرشا د امیر شیرعلیخان مهرستهتاریخ نلري کوم دولتی نښان هم پرستهمځکه چې د

سیستان په ښخړی پسوری اړه اری نو تاریخ ئې د ۱۲۸۷ ه د پای ورځی او یسا د ۱۲۸۸ ه

کال اومړنی ورځی تاکلی کېدلای شی د لیک مضمون دادی :
عالیجاه عزت و سعادت دستګاه

سلاله سادات الکرام سید نور محمد شاه سلمه الله تعالی بعد از شرح مراتب لطف و مهربانی مرقوم میدارد و مراسله دوستی

علامهٔ مشفق مهربان مهجر جنرل بالك صاحب بهادر و عالیجاه عزت و سعادت نشان صفدرعلی خان بمطالعهٔ انور والا گذارش

یافته خورسندی حاصل و بریشنکه صاحب بهادر مذکور بروز چهارشنبه ٤ ذی الحجه روانه سمت مقصود شده‌اند

اطلاع واصل شد مخفی نماند که از گرشك تاخاك سیستان سوارهای هلمندی راحکم شد چهار چهار سوار منزل بمنزل

نشته خریطه کاغذی شمارا دست بدست بشما برسانند و خطوط شما نیز بهمین طریق بگرشك رسانیده از آنجا بداك پیاده

بحضور والا برسد حالی باشد باقی از ینطرف بفضل الهی خیریت است فقط .

[ دوهم لیك ]

تقطیع ۵×۸ انچ شین غرندی خورا پوسکه لیکی اری ددې لیك تاریخ د ۱۲۹۰ د دربمې

خور ۲۰ ده د امیرشیرعلیخان مهر ئې دلیك په پای کې ثبت دواړه مخونه ئې لیکل شوېدي دا لیك د بدخشان په واقعاتو پوری اړه لری مضمون ئې دادی :-

عالیجاه عزت همراه سلالة السادات الکرام سید نور محمد شاه سلمه الله تعالی بعد از شرح ملاطفت و مهربانی واضح میدارد عریضهٔ صدق فریضهٔ یوم شنبه ۹ شهر جمادی الاول یوم یکشنبه ۱۷ بمطالعهٔ و ملاحظهٔ والا درآمده احوالات مندرجهٔ حالی رای عالی شد.

احوالات سمت بدخشان را سابقاً همان است که بتکرار برای شما رقم زده و از ورود عالیجاه عزت و بسالت همراه نائب محمدعلم خان در خاك بدخشان مطلع شده اید.

چون عالیجاه راستی و صداقت همراه میر محمودشاه خان هوا-دار این دولت خداداد است سابق از ورود عالیجاه نائب محمدعلم خان در خاك بدخشان عریضه جات میر محمودشاه خان بحضور انور رسیده این معنی را معروض داشته بود که مردم بدخشی از کمال نادانی و جهالت فطری که دارند هر آینه در مقام خیره سری و هرزه درائی پیش برآمده اند سر-کاروالا قول عالیجاه مذکور را به جهت که او از مردم بدخشی آزرده گی زیاد داشت محل اعتماد ندانسته حمل برغرض میفرمودند و حال آنکه مشار-الیه بر حال مردم بدخشی خوب آگاه بوده چون مردم بدخشی بدون سبب و علت در مقام خلاف و نزاع و شورش و فشار برآمده هر قدر از طرف عالیجاه نائب-الحکومه دلجوئی و نوازش و اکرام درباره آنها به تقدیم رسید دست از شور و آشور و بغی و طغیان برنداشته چون مقدر الهی بود که هزارها نفر این طایفه خیره سر عرضهٔ شمشیر و به هزارها آدم اسیر و دستگیر شود همین است که سپاه نصرت پناه به دفع مادهٔ فساد مفسدین برآمده دفعهٔ دو مقدمه اتفاق افتاد جمعیت بدخشی پراگنده و پریشان و خاك بدخشان از خاشاك وجود آنها بکلی پاك شد شرح مقدمه ها از کتابچه علیحده حالی شما خواهد شد از ین طرف به لطف الهی خاطر خود را در همه باب جمع دارید و احوال خیریت خود را یومیه قلمی و ارسال دارید فقط تحریر چهارشنبه ۲۰ شهر جمادی الاول ۱۲۹۰.

«مهر امیر شیرعلیخان»

[غوره وېناوې]

## انساني مقام

د انسان عالي مقام ستاسی په مخ کې دی په لاس ئې راوړئ. [شیللر]

## انسانان

انسان تراوسه لا د خپل دوني لوی والی سره داسی انسانان سوی ندی چی و کولای سی یوازی د خپل انسانی عقل په امر کار و کړی. دا خبره ده چی و پخو د یوې چنګښې یا یوې خزد کی افسانه د یوه انو او فیلسوفانو تر خبرو ډېر د خلګو په مغز کی نفوذ کوی.

تراوسه پوری انسان خپلی ډېری اوږی تجربې او معارف تر خپل ځان د کښتر او ضعیفو حیوانانو څخه زده کړیدی. [لافونتن]

د [ماوریس کارنفورت] لیکنه:
د ښاغلی «نومیالی» ترجمه

# شیان او جریانات

زموږ مربوطې چارې چې هر څنګه وي خو موږ هر کله د [شیانو] او د [جریانانو] سره مخامخ یو، راسره چې یو ډېر ساده مثال وګورو یو ځای مثلاً یو غونډه سوېده او یو سړی بدې باب کې چې هلته څه وسوه غوادی یو رپوټ تیار کړي. او څرنګه دی باید دا بیان وکړي؟ دی البته بیان داسې کوي:-

پردل، کندل، او میږدل حاضر سوي وه. دوی میز ته ګرداوړده پسه چوکیو کې کښېنستل او پسېدي کې ئې مذاکره وکړه چې څه وکړي، بدغه رپوټ کې او هم د شیانو او هم د جریانانو بیان راغلی دی. پردل، کوندل، میږدل میز او چوکیانی دا [شیان] دي او ددوی کښېنستل او زغېدل [جریانات] دي دا ویل کېدای سي چې بدې بیان کې د تفکر دوې اساسي کټاګورۍ په کار لوېدلې دي او دا ښائي زده سي چې د چارو د هر حالت هر بیان چې وي هر کله نردغه منطقي مثال لاندې راتلای سي

د چارو د کوم حالت او د پېښو د کومې نتیجې په باب کې او مړی ددې خبرې په باب کې بیان دی چې [څه شیانو هلته ګډون درلودی] او درهم ددې خبرې په باب کې بیان دی چې [څه جریانات هلته پېښ سوه].

[ډیالیکټیکس] ددې خبرې له زده کولو څخه راشروع کېږي چې څرنګه [شیان] او [جریانات] په لازمي ډول سره نږلي دي.

ددې لیدنه بالکل آسانه ده چې جریانات پر شیانو باندې مشتمل دي که ناسې غوادې چې د یو جریان پسه باره کې وزغېږئ او هر کله ناسې و شیانو ته یو څه مراجعه هم کوې مثلاً یوه مذاکره د خلکو ترمنځ یوه مذاکره ده، د سونګ یو جریان دی او داسې هم نور

که ناسې غواړی د یو داسې جریان په باره کې وزغېږئ لکه دا چې باد چلېږي نو بیا ناسې ته درمعلومېږي چې دغه چلاو د هوا د [مالیکیولونو] له یوه حرکت څخه جوړېږي همدارنګه برقي جریانات د [الیکټرونو] پر حرکت مشتمل دي.

دا خبره چې په جریانانو کې زغېږو صرف بدې باب کې زغېږو دي چې څه پېښی و شیانو ته ور پېښېږي، ښائي دې نتیجې ته موخطا باسې چې شیان نو تر جریانانو ډېر بنیادي او اساسي حیثیت لري. رښتیا هم دا هغه نتیجه ده چې د ډېرو فلاسفو له خوا راایستلې سوېده، مثلاً

د [برتراندرسل] له خوا کله
چې ده کښلې دي چې نری له دي
څخه جوړه ده چې [شیان دي
دخپلو کیفیاتو او روابطو سره]

خود غښ بوه نتیجه ډېره خطا
ایستونکې ده ځکه د تصویر
هغه بل اړخ دسړي له نظره
اچوي او هغه دا چې؛ باید وویل

سی، شیان بخپله [له جریاناتو
څخه جوړ سوي دي] د مثال دپاره
بو سړی فرض کړی . ددهٔ په
بدن کې حیاتي جریانات روان

دي چې هغه د وینې دوران
هضمي نظام، دول دول عصبي
کارونه او د [میتا بولزم] پر له
پسې جریانات دي. په یوه نا کلي

شکل کې ددغه جریاناتو پر له
پسې پېښېده ددهٔ هستي جوړوي
په هره لار چې دې جریاناتو ته
تغیرور کې نو دی تغیر کوي .

که ده ته تغیر ور کې نو دی
مري او د وجود خاتمه ئې راځي
که ناسي ددغو تو لو حیاتي
جریاناتو په باره کې وزغږېږیء

او دا هم په زغږېدو کښېناسيء
چې څرنګه دا جریانات یو له
بله سره تړلي دي او یو په بله

کې اغېزه لري او تر دوی په
دباندې دنیا کې هم ددوی اثرات
بیان کړی نو ګو با ناسې [ددهٔ
په باره کې پوره زغږېدلی یاست

بدن نو پر ته ددغو جریاناتو له
مجموعې څخه چې دی ئې جوړ
کړ یدی بل وجود نلري .
کټ مټ دغه شانې ملاحظات د

هر هغه شي په باره کې په کار
لو یدای سي چې غواړيء ناسې
ئې میدان ته کړيء . د یو شي په
باب کې [انهایت] نسته ؛ ددهٔ

وجود دارومدار له جریاناتو څخه
راجوړ سوي دی لکه [اینګلز]
چې داخبره کړیده :[ نړی‌ه
داسې نده چې دتیارو شیانو د

یو مخلوط په شان وفهمول سي
بلکه د جریاناتو د یو مخلوط
په شان ده چې په هغې کې شیان
په ظاهره ثابت دي... خو وجود

ئې د راتلو او بیرته تلنې د تلو
د نه پریکېدونکې تغیر په سلسله
کې رهی دهٔ ] .
[ دا بیان د هغې لیکنې په څلرمه

برخه کې راغلی دی چې د
« لودویك فیور باخ » تر عنوان
لاندې ئې کښلې دی .

رشتیا هم د علم د کار یوه غټه
برخه لدې کشفو او څخه عبارت
ده چې څه دول جریانات رنګا-
رنګ شیان په وجود راولي، تر

کومه حده چې موږ کولای سو
چې دا ومومو چې څرنګه شیان
له جریاناتو څخه راجوړ سوي
دي هغومره موږ ددوی خواص

مومو او دا هم را معلومیږي چې
په بېلو بېلو شرائطو کې به دوی
ته څه ور پېښېږي او ددوی
سلوك څرنګه دی او څه دول تر

اغېزې لاندې راوستل کېدای
سي او تغیرور کول کېدای سي .
څرنګه چې شیان له جریاناتو
څخه راجوړ سوي دي نو نا متغیر

غیر فاني یا په مطلق دول ثابت
شیان چیری نسته او له شیان چې
وجود ته راځي هغه تغیر کوي
او له منځه وزي. ثبات د تغیر د

یوې درجې نوم دی مثلاً موږ
د یو داسې شي فکر کوو لکه
د غرا غلمبه چې دا نو غیر ثابته
یا بې ثباته ښکاره ده او د یو جسم په

قطار کې ګرد سره نسې راتلای
دا لمبه څرګېږي او په آسانی
له ما بینه وزي او کېدلای سي

چې نور شیان په سهولت سره بېکښې نېږي . خو له بله پلوه بیا نو موږ پا بو چو کوه یا بو بشري بدن ډېر ثابت یا ډېر

پا بښت والا دی. اوس نو شاعرانو ژوند د څراغ د لمبې سره تشبیه کړېدی او دا نو صرف یو شعري تشبیه نده بلکه یو صحیح فلسفي

حکم بلل کېږي، یوه لمبه له تا کلو جریانانو څخه را جوړه سوېده او هر جسم [ چې هر څنګه په مقابل سوی نو که ثابت یا پا بښت

والا وي ] هم دغه شانی الجریا-نانو څخه جوړ دی. دغه حقیقت ښه وختي لا د فلسفې په تاریخ کې درک سوی و کله چې یونانی

فیلسوف [ هیرا کلیتوس ] ډېره رنګین کلام کړو کښه د نریه تل تر تله یو ژوندی اور [ وو دی ] او [ وی به ] چې په اندازه

بل سوی دی او په اندازه مړ کېږي » .

او تغیر کول که په معلومه اندازه صورت وي او که نه وي خو د

شیانو وجود هر کله له تغیره ډک دی، او دوی وجود ته را څي تر ډېرو تغیراتو لاندې واقع

کېږي او بالاخره ئې وجود ختمېږي. دغه حقیقت تل تر تله د علم له خوا تائید سوی دی. ځینې وخت دا فکر سوی دی کله چې

پر مځکه باندې هر شی فاني کېدونکی دی نو بخپله مځکه لمر او ستوري ثابت او ابدي دي خو تر کومه ځایه چې موږ

د [ کازمیکي ] جریانانو په باب پوهېدلي یو نو هغه بالکل لدې مخالفه نتیجه را ښئي چې بخوا لا د [ هیرا کلیتوس ]

غوندې فلاسفو او [ شکسپیر غوندې شاعرانو له خوا را ایستلی سوېده چې : [ .... هو په خپله داغونه کړه او توله هغه

څه چې پېکښې دي ګرده به زنګسي ... ] هم داشانې ځینې وخت سائنس پوهان [ د بنیادي ذرانو ] په باره کې چې له دوی

څخه مادي نظام تیار سوېدی ، پدې شان زغېدلي دي چې لکه دوی چې ابدي او غیر فاني دي ، خو اوس دا ذرات هم داسې

ملاحظه کېدای سي چې لکه یو بل شی غوندې چې وجود ته راتلونکي او بېرته ځني تلونکي

دي، نو ځکه لـه دې څخه دا څېزه راوزي چې هر څنګه چې موږ یو شی مطالعه کوو باید هر کله دا په نظر کې ور سره

وساتو چې څرنګه دا شی شروع سو، څرنګه تغیر کولای سي او څرنګه به ور پای ته ورسیږي . خو که دغه شی بل ډول ملاحظه

کو نو موږ نسو کولای چې د هغه په باب کې پوره کافي پوهنه ولرو .

«د لویانو وراشي»

## انسان

یو انسان چې د خپل ژوند په معنی او هدف و پوهېږي، خپل ځان به نه یوازې د خپل ملت د افرادو سره یو شی وګڼي بلکه د نورو ټولو انسانانو سره به ئې مساوي و بولي . « د تولستوی »

## د ژوند معنی

د ژوند معنی په ښکلا او قدرت کې باید و پلټل سي، زموږ د ژوند هر کړی باید تر د مخه او هدف ولري . « د ګور کی »

## سعادت

د ژوند هدف سعادت نه دی بلکه سعادت ئې بشپړونکی دی .

**بناغلی سلیمان «لایق»**

# د آزادۍ شپېلۍ ته

اې شپېلۍ خوږې شپېلۍ زما د ژړانو ژبې
اې د زړه تل شویو، ځپل شویو او سېلو ژبې

اې د کاروانیانو، لېږېدو او اوښکو ژبې
اې په نور و شپو کې د چوپیا د عظمتو ژبې

اې د ځوان شپو نکي د بې تعبیره ارمانو ژبې
اې د بې پناهو یتیمانو د سلګو ژبې

ته د خدای د پاره په ما بوه مهربانی وکړه
زما د مضطربو ژړانو ترجماني وکړه

اې شپېلۍ خوږې شپېلۍ زما درد ژړا نه وایه
وایه چې سوځم دا رسوا دردونه وایه

وې ښیه هغو ته چې آرزو لري احساس لري
یو ئې سره افشائې که دا پټ رازونه وایه

سوځي مې رګونه د دردونو د سازو سره
چېرې کوم دردمن نه دا رنګین سازونه وایه

وردې که نغمو ته بیا رنګونه د دردو زما
وردې که دردونه بیا خوږوالی د نغمو زما

سوځي مې هغو ته یو علاج زما د دردو وکه
یو ښکلی تعبیر زما د سرکشو ارمانو وکه

زما له فریادو سره ملګري که نغمه خیله
ویښې که د غه قوم یو تدبیر د ویښتو وکه

دې جامدو غرونه حرکت ورکه قوت ورکه
زموږ سره ملګرې شه ملاتړ د زلزلو وکه

بربېږده د نېړۍ او تجاوز ملګرې ماتې شي
بربېږده چې د ظلم او استعمار کنګرې ماتې شي

بوسه زما دردونه زما له بلنده لمبو سره
زما له تندربزو خوځونکو ترانو سره

وې زغوه وې ربوه وې خوځوه وې اوله
زما له خون شریکو خپلو ورونو پښتنو سره

زما له ګرېوان څیرو پښو لوڅو بوټنو سره
زما له بې پناهو بې ناتوبو اوښکو سره

ورشه د پښتون قام له دې غرو رغونو پاڅوه
بو ځل دا ویده زمری له دې خوبونو پاڅوه

خوب نه که راویښ شو به زلزل به زندانونه شي
لړزند به به وینو کې واتونه اوښارونه شي

چور به ماڼې پوړ او موټکمرې کې محشرونه شي
مات به به پښو د انقلاب کې ځنځیرونه شي

اوښکې د مظلوم به بارانونه سیلابونه شي
زغ د آزادۍ به طوفانونه تندرونه شي

او ښې مختې نه دې غیرتمنونه له سر سره
سرغوڅ شوې ښه دې نه د نورو له افسر سره

اې شپېلۍ دا اښو کې زما په مخ باندې شعرونه دي
دا زما د دردونو ویلي شوي تعبیرونه دي

زه پښتون یم اوښکې مې د یأس دړېډا نه دي
دا زما له احساسه راوتلي ځنځیرونه دي

نه نه زه غلط شوم دا سر کښه طوفانونه دی
دوب به کړی دښمن دا نا فرمانه سیلاوونه دی

سم به کمه دا سیل د دښمن د استعمار په کور
یعنی د غاصب د دبدبې او اقتدار په کور

درد زما ارزو زما اسره زما ارمان زما
دا ښکلی جهان زما د ښهر گلستان زما

عشق زما وفا زما اولاد زما بنیاد زما
واړه دی قربان شی نر آزاد پښتونستان زما

هر داغ د سینې به می د گلو غونچه وسپړی
دا د غم اړکه به شی جنت زما بستان زما

چیری که پر ښنا د آزادیه پښتون نه وخندل
چیری که پښتون د استعمار په وینو لمبل

بوسه زما سندری د پښتون د انقلاب پلو
ای خوږی شپیلیه د انقلاب او اضطراب پلو

زه الهدي بې خونده غاقبته بېزار شوی یم
یومی سره د تندر د طوفان او د سیلاب پلو

دا لمی که خنجر می که سنگر د مرکومی که
رب دې یاره یو می زه د وینو د تالاب پلو

ژونده د اسمان می که د سر په کاسه وگرزی
زه به کام اوچت کړم د میدان د انتخاب پلو

دا زما قسم دی چی به مرمه له پښتو سره
یا به آزاد ژوند کوم له ټولو پښتنو سره

«پښتو انی ادب»

مرحوم حاجی جمعه
د ماشور

# پر ګلانو باندی پاس زده قدم ورو‘ورو

نن د باغ برلوری تله کا صنم ورو‘ورو
په خمار، خمار کانه کا همدم ورو‘ورو

سره ګلان په د باغ حسن ځنی بور کا
که ئې ولیدی د حسن ارم ورو‘ورو

چېری نه‌وی چې دی ښپې شی بری آزاری
پر ګلانو باندی پاس زده قدم ورو‘ورو

د بهار ګلان به خاوری په مخ موږی
نازنین که په خندا سی خرم ورو‘ورو

تازه والی د ګلانو په شبنم وی
یار د ځان به خولی، واله کا هردم ورو‘ورو

خماری سترګی چې پورته کړی خماری
نرګس ګوری پښت پانه ! هردم ورو‘ورو

د دیدن طاقت دی نه وینم به ځان کی
وآفتاب ته څوك کتلای سی سم ورو‘ورو

د معشوق به مدح دمه د عاشق سی
ځکه لیکم ئې صفت په قلم ورو‘ورو

[جمعة] خاوری نن د تللو عاشقانو
لاندی پاسی اوسنی تر قدم ورو‘ورو



ښاغلی عبدالشکور «رشاد»

# حریت

دمجنون ژوندون به څه وي چې لیلا مړه
څه به کار دی نش کالبد، چې زړه دچا مړ ی

زړه دېوه ده دا د خمو به قالب کې
خدا و مه کړي چې به دا دېوه دچا مړی

چې مرغه ولاړ سي قفس د ماتېدو دی
که به زړه مړی، نش کو ګل دی لا ېښوا مړی

هیڅ ممکن نه دی باښت د هغه پېژی
زړه چې مړی کالبد مجبور دی خامخا مړی

[حریت] د هر ملت د بدن زړه دی
که دا نه وي هم ملت مړی هم بقا مړی

چې د بل د اسارت به او مه اړ شي
به هغو زړو کې غیرت، هو دی، فنا مړی

ښاغلي «ویران»

# ښاغلی سید احمد «ګلزار»



زموږ د واسې شاعرانو څخه یو ملا سید احمد دی چې پخوانی تخلص ئې «بهزار» او اوسنی ئې «ګلزار» دی، نوم‌ـ‌وړی د حاجي

خیر محمد زوی د کندهار د ښار د اوسني دوهمې ناحیې د [منجاریانو] په کوڅه کې زېږېدلی دی خو اوس ئې استوګه د

دریمې ناحیې د [خوګیانو] په کوڅه کې ده. ملا سید احمد په ۱۳۰۱ ش کال ودنیا ته راغی چې پدې شمېر ئې سن اوس شلو پښتو

کالو ته رسېږي، په ۱۳۱۰ ش کال ئې ددې ځای په لومړني ښوونځي کې په درس پیل کړی او تر دریمې ټولګې پورې ئې ویلي دي

پدې وخت کې دپښې د ماتېدو په عذر له ښوونځي څخه پاته سوی او د کورسره نژدې ئې په یوه

جامع کې سبق ته دوام ورکړ او ورو ورو ئې د دغه ځای د ملایانو څخه ئې په خصوصي توګه مروج

عربي او فارسي کتابونه اوستلي دي.
په ۱۳۲۱ ش کال دده د کسب او کار دوره شروع

کېږي ځکه چې پدغه کال ئې پلار وفات سوی او د ژوندانه احتیاج د پوره کولو دپاره ئې

[په مصنوعي ګلانو جوړولو] پیل کړیدی چې ددې لاری څخه په ئې دوه ډېر پیدا کول، پدې

برخه کې ئې د ګلانو جوړولو په کار کې ښه مهارت هم په نصیب سو، دده په اشعارو او بیانو کې ددې

کسب یادونه هم پدې ډول ده ګړېدهء:-

د قدرت د ګل پېښې ګولای نسي
که څه هم د پرښا پسته دی زما ګلان
ورپسې ئې د چینې او ښو د پڼړی کړاو د کان

راو پوست او تره پرو ګلو پدې کار پوخت ږده دي
کسب یادونه هم ده پدې ډول ګړېده :-

د خوږ منو د زړه ګیو خوږ کلام یم
رغوونکی د چینیانو د درزو زه

بالاخره د هغې مفرطي علاقې او ډېر میل په وجه چې د نخښیکې چار و سره ئې درلود نو ئې د پخوانه

لاس ور واچاوه او س د یوې داسې ودو کې موسسې ښښتن دی چې په هغه کې برقي ژرندې جوړ وي

د ولیدنګ کار او دځینو برزو ترمیم دده له عادی کاروڅخه دی، داګری چې زه ددې سوانح به لیکلو لګیا یم . ښاغلی سیداحمد [ د ولیدنګ د یوه ترانسپرمر په جوړولو بوخت دی ] .

ملاسیداحمد د شعر او ادب دنیا ته هغه وخت راګډ سوی دی چې په ښوونځی کې ئې سبق وایه .

نوموړی وائی چې لومړی غزل مې په ۱۳۱۵ ش کال جوړ کړیده . دده دغزلو شمیر و ۶۰۰ ته رسېدلی دی چې څه برخه ئې په طلوع افغان کې چاپ سوی هم ده . یوه هم غیرمطبوع دغزلیاتو مجموعه لري چې ۳۰۰ بارچو ته رسیږي او داټي د ډېرو کلونو بخوا لیکلې ده . آخرین ادبي خدمت ئې د یوه کتاب خپرول دی چې د [ ګاز ار سیداحمد ] په نامه څوواره چاپ سوی دی او دخلکو د ډېری تقاضا په سبب اوس په بازار کې لږ موندل کېږي . دا کتاب د ډېرو پښتنو شاعرانو دغزلو مجموعه ده چې دا غزلې وطني سندرغاړي د ساز و سره وائی .

ملاسیداحمد د ښه آواز خښتن او په موسیقی کې هم لاس اری .

نوموړی دخپلو خوږو خاطراتو په لړ کې داخبره نل یادوی چې دده په دکان کې به د کندهار ولسی شاعرانو، لیکوالو او عالمانو ناسته ولاړه در لوده . په ز یاته بیا مرحوم حاجی رحمت الله بابا مرحوم عبدالله شاعر د سپین بولدک، آغاجان د میر بازار، سید عبدالله جان دار غنداو دده استاد عبدالحکیم شیدا، محمد نسیم نوری او نور ډېر شاعران چې نوموړ نه یادول ئې داليکنه اوږدوی دده د محفل علمی او ادبی څېرو به داستفادې دپاره د ډېرو خلکو پر را نستلی ؤ .

کومې مشاعرې چې په طلوع افغان کې باخپرېدې طرح به ئې دلته کېده .

نور نو ښاغلی سیداحمد بوډ ژوند لک، نوراني خندهرو به سړی دی د آشنائی پاس اری .

له ډېرو کلو راهیسې موږ دده یو تازه شعر نه دی لیدلی، ایکه چې دنخنیك پښو، پښو پرزونې د شعر او شاعری ناز کې برزې ور مانی ګرېدې خو د بخوانی اثار وڅخه ئې دا دوې توئې دلته راوړو :-

«۱»

## پوالی

لاس دی په لاس کې واله راکه د الفته څخه
درس دی حاصل که مسلمانه اتفاقونه څخه

هغه پر سر پلا کانې ولـه چې دوبې اچوی
بل کار ئې نسته دنامرد بې شیطانته څخه

ښه رانه وګوره، ښه په ګورم چې وروړنې سکه
ګوښې له کینـــ ، هم راجلاسه دنفرته څخه

نل لاس په لاس او یوه زړه په ومقصدارة مخو
سو به کامیابه که کار واخلو دوحدته څخه

پلا یوه لاس نه کېږي کار دا په ښکاره وی در نه
په دوو لاسو کې قوت ډېروی له هیبته څخه

هسه بېزاره په لمسون او شیطانت ددښمن
لاس را نر غاړه که راځه له محبته څخه

«۲»

## یوه غزل

د فلك په گردش سوم زېر و زبر
بېطالع سوم د بد دوست په اثر

هغه یار چې د زړگي ئې سر رانېر ؤ
د وصال سهار ئې سو زېر ماز یگر

جهان ټوله بېوفا گلرخو چور کي
مخلص نسته ټر کوساته ټر خیبر

همېشه د ځان ستاینه او صفت دی
در ته وائي چې زه یم یاقوت احمر

که هر څو فکر مذعف کړي دده ذات ته
هر معلوم به نسي حال د نصب وجر

یو څو ورځي دي به چېر ټو مو ټو ستائي
بیا دې سپك کي دغماشي ټر وزر

ستا له قصده دغماز پر څنگ رهي وي
په بازار کي به خندا وهي چېکر

او به خدایه منافق و غماز دواړه
د هجران به تېشه کړي کنده و کپر

دزړه حال که ذیوایه بېزاره بل ته
منصور وار به دي سر غوڅ سي په خنجر

---

د یوه نا وېښي خبري

## ښځې؟!

که غواړئ چې د یوه ولس د پرمختگ او تمدن انداره معلومه کړئ نو د هغه ولس ښځې وگورئ. [ناپلیون]

په هر ښکلي شي کي د ښځې د ښکلا یوه نمونه پرته ده. [خوستل]

د نړۍ ټول خزانې د یوې هوښیارې ښځې د نوك سره برابرېدای نشي. [یو چینائي متل]

د یوې ناچوړې ټولنې لپاره د ښځې لاس د نارینه ټر عقل پوره کار کوي. [....]

ښځې یوازې ځیل غېږ کي وړو کو ته ځای نه ور کوي بلکه ولسونه په غېږ کي ایسي. [کینه]

ښځو اختراعات نه دي کړي خو مخترعین ئې روزلي دي. [ادېن]

که غواړئ چې د یوې ټولنې د تمدن سویه وپېژنئ نو یو هو ښځو پر شمار ئې ښه کولای سئ همېشه او مړی اصیحت د ښځې څخه واوری. [چیني متل]

په هغه کور کي چې ښځه نه وي همېشه به د خرابه په معرض کي واقع وي. [....]

ټر هر بالنسبت د مور غېږ پسته ده او ټر هر ښکلي گل د ښځې د خندا ډکه خوله ښکلې ده. [....]

د هر لوی کار منشا ښځه ده!؟ [لامارتین]

زموږ نکلونه

ښاغلی «هاروني»

# دیوه واده داسې مراسم چې په دسیسه شروع سوه او په خوشالۍ بشپړه سوه

د نړۍ ټوله ولسونه او قامونه د واده په مناسبت عجیبې و غریبې خبرې او دول، دول دودونه لري خو زموږ هغې که تر هغو بالاتره وي کم هم نه دي .

دا یو نکل دی چې څو کاله پخوا د دغه کندهار په ښار خوا کې پېښ سوی دی . رښتیا چې کله، کله داسې پېښ سوي نکلونه تر چوړ سوو نکلو خوندور او د تعجب وړ وي، بدې ترڅ کې چې دا پېښه ترلو د عنوان لاندې وایکل سوه باید [عملي ټوکې] ئې هم و بولو .

څوک چې زموږ د رسم ؤ رواج سره آشنا نه وي نو د هغو دپاره دا څو کرښې د مقدمې په توګه وړاندې کوو، یو هیڅم چې دا خبرې به د ډېرو خلګو نه تکرار هم وي خو یادونه ئې د دې بیان یا مقالې لیمګړ نیاور پوره کوي نور نو دا لنډ نکل چې بخپل رونق څه قدر خوږوالی هم لري داسې دی :-

زموږ نارینه چې وغواړي د ماندینې خښتن سي نو دا ترتیب دا دول وي چې د ښځې تعلقداران خپله ښځه بخپله یوه نارینه ته ور کوي د ډېر په حاله داسې وي چې د نارینه مور یا خور، خاله یا عمه، ماما یا دا کاماندینه یا یوه بله ښځه چې د دوستانو څخاوي پر کورو ور سمه سي دا نو [مرکه] بولي مرکه کور پر کور؛ کوڅه پر کوڅه ګرځي څو دیوې ښځې څرک وباسي او د خپل نارینه دپاره ئې ورډ وبولي بیانو د نارینه له خوا څو کسه ورسي او هغه خوښه سوي او ټاکلي نجلۍ و خپل نارینه ته ور وغواړي .

بیا دې سلسله کې کله، کله د ښځې خوا هم غواړي چې هغه نارینه یعني خپل راتلونکی زوم هم وویني، او د هم دغو مراحلو د طی کولو او یا اللو په دوران کې یو وخت داسې پېښه سوه چې د کندهار د ښار د جنوبي سیمې په یوه نژدې کلي کې مرکه یوه کور ته ورغله او د خپل نارینه د پاره ئې یوه نجلۍ خوښه کړه او ستنوڼار چې د واده د تړون دود دی دا ئې ځنې راوړه .

او په خوشالۍ د زوم کره چې هغه پیا د ښار په نواحیو کې ؤ راغله . دا رسم په یوه عادي دول بشپړ سو مګر دسیسې په منځ کې وي چې هغه د مراحلو طی کولو رسوا کړې څرنګه؟ داسې: دغه نجلۍ چې مرکې ته ور ښکاره سوې وه بله نجلۍ وه او هغه نجلۍ چې د واده دپاره خپلو مشرانو ټاکلې وه هغه په سرپسکه وه او هیڅ نه غوښتله او د دې نجلۍ مشرانو داسې تجویز کړی ؤ چې مرکه راسې بله سمه نجلۍ پسه

ورښکاره کوو او د واده به شپه به دغه ډېر ښکاره انجلۍ بې لاس ور کوو همغوی چې دغه شي هم وکړه مر کي تـه ئې بوه بله

انجلۍ ورښکاره کړه چې کړه ورته ئې سم وه، او چې د واده شپه سوه خپله معیوبـه انجلۍ ئې جوړه کړه او د ناوې په توب کالي

ئې په واغوستل او د واده پر تخت ئې کښېنوله.

د واده د مجلې یعنی همغه وخت چې ددې انجلۍ [ستن ونار] د زوم بووده سوه دوی [د ناوی خوا] هم وغوښتل چې خپل زوم وو ینی

کله چې ئې وا ید همغه د دوی د ناوی ښايسته او بې عیبه سړی ؤ

ځکه نو د واده تر شپې پوری د ناوې خوا په اضطراب او بې خوندی او ډېرو اندېښنو دا کار مخ ته واهـه ځکه چې

نمونه ئې پوره ښکاره کړې وه او مال بل ډول ؤ.

همغوی چې زوم د ناوی کره راغی د واده شپه ده او زوم کوښښ

کوی چې قیافه ئې څوك صحیح نه کی دا بدي وجه چې دوی هم د ناوې خوا نه بل سړی ورښکاره

د پیغلی عزیزه «ارشاد» ترجمه

# اوزولا آیشتت



زموږ په نړۍ کی ډېر خلك ستاچی زموږ هر ستی او لاس نیوی ته اړ تیا اری او موږ کولای سو چې د دوی د ښکمرغۍ او خوښۍ د پاره کار و کړو، ځکه هر څوك هر څونی عاجزه او لوېدلی وی بیاهم یو کار کولای سی. د بوا او بل سره د امرستی او همکاری زموږ اجتماعی ژوند اسانه او مستریح کوی.

کړي ؤ حقیقی زوم یو بدرنګه سړی ؤ او بزه ئې نه درلوده کوا کی دوی هم کټ مټ دغسی کړی وه چې نمونه پر ډول وه

او مال بل ډول.

دا سړی ډېر وخت د دغه ذکر سوی عیب په جهت بې ښځی پاته سوی ؤ او همغه ښځه بې مېړه.

کله چې د واده په شپه دا د سیسي رسوائـی تـه راوونلې او وائی به د وادو خوا کی یو عالم خوشالی جوړه سوه د همغه کروم

ښځه چې د وادو خواؤ به ښځه سوی ؤ تو له خلاص سوه، د واده خـونـد او ساتېری ئې لس کرایـه سو.

اوزولا آیشتت یوه ښځه ده چې د هندوستان د ځنګلی قبیلو په مینځ کی ژوند کوی او ددې قبایلو ژوند ئې پر مخ وړ اړولی دی. دا د هند د [اوړسا] په قبیله کی د ۴۳۹۷ ماشومانو مور ده.

اوزولا آیشتت په ۱۹۴۲ کی په المان کی زیږېدلې ده دی په ورو کتوب کی د پرستاری سره ډېره مینه درلوده او په همغه ورو کوالی کی ئې له نندی ښځه د خیر کتنیا او زړه وړ توب نښی ښکاره کېدلې، چې اوس هم د زړه ور توب یوه نمونه ګڼل کېدلای شی اوزولا د پرستاری په شق کی خپلو زده کړو ته ادامه ور کړه او شاو خوا خلک

نو له بو مهاله چې دا المانۍ
نجلۍ په چې د آرین نژاد جدابه
بښاري، د لویو خدمتو مصدره
وګرځي .

د بیــرستاریه د زده کړې د
دورې تر بشپړولو وروسته صلیب
په موســسه کې د ډېرو خدمتو تر
اجرا کولو وروسته په ۱۹۵۷

کې د ملګرو ملتو د صحي سازمان
له خوا مامور کړه سوه چې د
پرستارۍ په عنوان سره د هند
وځنګلو ته مسافرت وکړي .

دا و بوې داسې ځنګلي ته ور
رهــی کېدونــکې وه چې د
اوسېدونکو د نوار خوبو ښځه
ئې نا خبره وه او یوازې ئې د

هندیانو په باره کې په کتاب
کې بو څه لوستلي وه. دې فکر
کاوه چې نــردې ښه کار به
چېرې وي چې د داسې خلکو

پرستاري وکړي چې و مرستې
ته ډېره اړتیا لري او دوی هم
انسانان دي، د دې په زړه کې
د بدمرغو خلکو سره د مرستې

او هغوی ته خدمت کولو شوق و.
اوزولا آ پشنت د هغو خطرناکو
او بېرونکو ځنګلو په مینځ

کې یوازې د ترزېقاتو او زخم
تړلو مامور نه وه بلکه د ډېرو
سختو کارو تر اجرا وتله .
دې د اورسا په کلي کې ژوند

کوي، پردې ځنګله باندې دا
د سپینې مور په نامه یادېدل .
کله چې دې په دې ځنګلو کې
قــدم کېښود، وو ی او د ساری

ناروغیو سره ئې په مبارزه پیل
وکړ، د ۱۲۰ کلیو اوسېدونکي
ئې له ملا کښته ښځه وژغورل .
اوزولا پــه یوه بیماری فدا-

کارۍ سره دوی تــه دوا او
داکــتر بــرابــر کــړل او
حتی خپل معاش ئې هم د دوی د
آرامۍ د پاره وانګوی .

دا یوازې د شلوزرو هندیانو
په مینځ کې ژوند کوي او د
ابزاجورې سره یواځې هغوی دی
چې د دې ملګي ښځه ووزي

او له خلکو ښځه ئې ولاړه سي
اوزولا تر صحي مرستو علاوه
د هندیانو د کورو په جوړښت
کې هم د دوی سره او ئې فکري

مرستې کوي . که څه هم دې
په دې ښق کې تخصص نه درلودی
خو بیا ئې هم د هغو قبیلو ته دا

ور زده کړه چې کورونه د ختو
او د بېرو څخه جوړ کړي کوم
چې تر هغه دوی د ونو له پاڼو
او وښو څخه جوړول .

د اوزولا کلنیك د ۸۲ کورو
پــه مینځ کې چې د اورسا د
قبیلې د استوګنې ځــای دی
پروت دی، دې په هغه ځای کې

د وربجو، نخودو او زرد کــو
کښت او کرهنه رواج کړله .
اوزولا یوه ماهره ښکاري هم
ده، ځینې وختونــه مجبوره

کېږي چې د خپلو ناروغانو د
لیدنې د پاره دوې ورځې د ګڼو
او سختو ځنګلو په مینځ کې لار
ووهي. یوه ورځ چې د دې د ول

ګــتنو د پاره د ځنګله په مینځ
کې تېرېدل، یوه [ببر] حمله
پــرو کړه او سخته ئې زخمي
کړله تر هغه وروسته په هند کې

د المان د سفارت لــه خوا یو
ګرانبها ټوپك په سوغات کې
ور کړه شو .
دا د ډېره د [ببریــانو] یا د

[ایبزانو] ښکار ته ځي او په
مهارت سره ئې ښکار کوي .
کله چې اوزولا د ښپې له خوا د*

# د املا په باب د پښتو ټولنې فیصلې

## لومړۍ فیصله

په ۱۳۲۱ هـ ش کال کې د جوزا په ۲۱ مه د ۱۹٤۱ ع په جون کې د پښتو ټولنې په غونډه د افغانستان ۲۵ تنه لیکوال او پوهان په پښتو ټولنه کې راغونډ شوه او یو ۲۱ اختلافي موادو باندې ئې وروسته له بحثه فیصله وکړه چې دالاندې کلمات داسې ولیکل شي:-

| [اختلافي صورتونه] | [فیصله شوي صورتونه] | | |
|---|---|---|---|
| شوندي، شونډان | شونډي | اوبه، او | اوبه |
| کښېناست، کښېنوست | کښېناست | تویه ؛ تو | تویه |
| ټول خلق، ټوله خلق | ټول خلك | مېړونه، مړونه | [او داسې نور] مېړونه |
| ټولي خبري، ټوله خبري | ټولې خبرې | ولید، ولیدو، ولیدي، ولیدلو | [ولید] به ټولو ماضي- |
| یانه، یاتې | یاتې | ګانو کې دغه یو شکل غوره شو مګر په ځینو کې په آخره کې [ه] هم ور زیاتوي لکه | |
| کډراغلي وای، کډراغلي وي | کډراغلي وای | وواهه . | [نور به ۳۰ مخ کې] |

* ناروغانو کتنې ته ورځي یا یوه لاس کې توپك او په بل لاس کې ئې بطروال څراغ وي ملګرو ئې بستې او بکسونه

چې د سرې میاشتې نخښې باندې وي، ورسره اخستي وي پدې بستو کې د ناروغانو درمل او ژغورلو د پاره دواوې او

اسبابونه وي .

کله چې اوزولا د المان د سفارت څخه د رخصتې اخیستلو د پاره توی ده بلی ته راغلې ده

دوه وړو کي ورسره وه چې د پلار او مور د دواړو له خوا څخه

یتیمان وه پلار ئې یوه څېړونکي پېر وژار وژلی او مور ئې پرانګون مړه شوې وه، اوس ئې نو اوزولا مور بلل کېدله او دې سائل

نردي دوه یتیمو وړو کو نېر د قبیلې ټوله وړو کې اوزولا خپله سپینه مور بولي .

کله چې اوزولا د رخصتې

اخستلو د پاره ځنګل پرېښودی د قبیلې ټوله افراد پر راټول شول د ځنګل وړو کو د خپلې وفادارې سپینې مور چې د هر

یوه په زړه کې ئې ځای درلودی د ننګاو په نسبت زړل ځکه چې

نور څوك نه وه چې د دوی پرستاري ئې کړې وای، د دې ځای له طاقت څخه تېرې تودوخې د دې پڼه د خښتې د

بوی ښځې په دول کړې وه او په مشکله ئې د بوی هندي ښځې څخه توپیر کېدی په تېره بیا چې د دې قیافه هم د نژاد

له حیثه بوځای د هندي ښځو په دول ده، او دا یو شي والی ئې د محلي کالو په اغوستلو ډېر ښکاره شویدی .

| اختلافي صورتونه | فیصله شوی صورتونه |
| --- | --- |
| لښ ، لوښ | لوښ |
| وښو - وسو | وښو |
| ښوی - سوی | ښوی |
| ښته - سته | ښته |
| ښی ، سی | ښی |
| لږه دودیه ، لږي اوبه ، لږ دودیه ، لږ اوبه | لږه دودیه ، لږي اوبه |
| ښې خبري ، ښه خبری | ښې خبری |
| غبږ ، ږغ ، غګ ، غاګ | ږغ ، غبږ |
| ځینی وایی ، ځنی وایی | ځینی وایی |
| له دې ځنی ، له دې ځینی | له دې ځنی |
| چلوونکی ، چلونکی | چلوونکی |
| ښوونکی ، ښونکی | ښوونکی |
| ښوونځی ، ښونځی | ښوونځی |
| ویل ، ویله [ لکه احمد ویله چی ] | ویل |
| ولاړ ، لاړ | ولاړ او لاړ دواړه صورتونه صحیح دی |
| وکړ ، وکی ، وکه | وکړ |
| وکړی ، وکی | وکړی |
| زما ، زمونږ ، زموږ ، ځما ، ځمونږ | زما ، زموږ او زمونږ دواړه صورتونه صحیح دی |
| مونږ ، موږ | مونږ او موږ " " " " |
| زه ، ځه [ د متکلم ضمیر ] | زه |

## دوهمه فیصله

په ۱۳۲۷ش کی د سنبلې په ۸مه د ۱۹۴۸ع د اګست په ۳۰مه په کابل کی د پښتو ټولنې په غونډه کښې دا ری او بری پښتو نخوا ۱۹ تنو پښتنو لیکوالو او پوهانو د پښتو لیک د ځینو اختلافی موادو په باب داسی فیصله وکړه :-

| اختلافي صورتونه | فيصله شوی صورت |
| --- | --- |
| ن، نړ | ن |
| زه، نه، ده، زۀ، نۀ، دۀ | زه، نه، ده، بې همزې به‌تو او دغسې مثالو کې |
| اوربدل، اخيستل، آوربدل، آخيستل | اوربدل، اخيستل [بې مده] |
| وليد، وګوره، اوليد، اوګوره [داسې نور] | وليد، وګوره [بې الفه] |
| مې، دي، بري، لاندی، باندی، م، بر، لاند، باند [داسې نور] | مې، دې، برې، لاندې، باندې |
| لومړی، کوچنی، ګود، ګونه، بوخت، لمړی، کچنی، ګډ، ګته، بخت | او مړی، کوچنی، ګوډ، ګونه، بوخت |
| چاپ، ګړيد، چهاپ، ګهړيد | چاپ ګړيد |
| ښ | دا نوري به د [ښ] او [خ] په ځای نه ليکو |
| ږ | دا نوري به د [ژ] او [ګ] د 〃 〃 〃 |
| ځ | دا نوري به د تلل د مصدر په فعل حال او دغسې نورو افعالو کې ليکو لکه ځي، بوځي، راځي. |
| ژوند، چوند، زوند | ژوند، په دغسې لغاتو کې به له [ژ] نه کار اخلو |
| ځيني، ځنې | د بعضې په معنی به [ځينې] او د [از] په معنی به [ځنې] ليکو |
| ويل، وي | ويل [بوازې په شعر کې [وي] جايزدی] |
| کښې، کښ | کښې |
| د ماضي بعيد ضميرونه | وم، وو، وې، وی، ء، و، وه، و، وې، يعنې د مفرد غايب او جمع غايب دپاره به [و] ليکل کېږي. |
| د شول د مصدر مشتقات | شوم، شوو، شوې، شوی، ء، شو، شول، شوه، شوې بايد وليکل شي |
| د ټولو افعالو د مذکر جمع اولي مطلقي ماضي ګانې | په لام ليکل به کار دي لکه راغلل، وليدل، بايد داسې وليکو: وليد، وکوت، وکړ. مګر ونه واحد بايد په آخره کې [ه] ولري. |

## فيصله دريمه

په ۱۳۳۷ش ھ ۱۹۵۸ع کې چې د پښتونوانې په بلنه د پېښور او بلوچستان پښتانه ليکوال او پوهان کابل ته دخيلوا کې د جشن په ورځو کې راغلي د سنبلې په پنځمه دا ګست په ۲۷ د پښتو ټولنه په باب مجلسونه او ادبي بحثونه شروع شوه وروسته له څو غونډو او ډېرو څېړنو د ليك د ځينو اختلافي موادو په باب دا راز فيصله صادره شوه:-

| مختلف صورتونه | فیصله شوی صورت |
| --- | --- |
| څمکه، مځکه، زمکه | څمکه |
| زمری، مزری، ځمری | زمری |
| کښته، ښکته، خکته | کښته |
| ښځه، ښیځه، خیځه | ښځه |
| کښل، ښکل [د لیکلو او ویستلو په معنی] | کښل |
| کښلی [د ښایست په معنی]، ښکلی | ښکلی |
| ماسخوتن، ماخوستن | ماسخوتن |
| ورخ، روخ | ورخ |
| موږی، میږدی | موږی |
| اوښت، واښت | اوښت |
| ورک، روک | ورک |
| خسر، سخر | خسر |
| خوسا، سخا | خوسا |
| سکروټه، سروټکه، سکوروټه | سکروټه |
| ورور، رور | ورور |
| وروڼه، روڼه | وروڼه |
| ورور ولی، رور ولی | ورور ولی |
| وروسته، روسته، روستو | وروسته |
| وروستی، روستی | وروستی |
| سیوری، سوری | سیوری |
| اخلم، اخلی، اخم، اخی، الم، الی | اخلم، اخلی |
| بښل، بښنه، بخښل، بخښنه | بښل، بښنه |
| ماسپښین، ماز پښین، ماپښین | ماسپښین |
| کوم، کم | کوم |
| اغږل، اخښل، اخل | اغږل |
| نمږی، مږی، نوږی | نمږی |

| مختلف صورتونه | فیصله شوی صورت |
|---|---|
| زوی، زامن، ځوی، ځامن | زوی، زامن |
| زېږېدل، ځېږېدل | زېږېدل |
| زغستل، ځغستل | زغستل |
| ځلمی، زلمی | ځلمی |
| سوځل، سېځل [سوزل، سېزل] | سوځل، سېځل |
| خوځېدل، خوزېدل | خوځېدل |
| غورځنګ، غورزنګ | غورځنګ |
| زغمل، ځغمل | زغمل |
| ژرانده، زرانده، جرانده | ژرانده |
| ژبه، زبه، جبه | ژبه |
| ژړا، زړا، جړا | ژړا |
| ژوند، زوند، جوند | ژوند |
| ژمی، زمی، جمی | ژمی |
| ژوبل، زوبل، جوبل | ژوبل |
| خېژی خیږی، خیجی، خیزی | خیژی |
| ژی، زی، جی | ژی |
| ژور، زور، جور | ژور |
| اژدې، اژدي، اږدې | اژدې |
| لمر، نمر، نور، مر، میر | لمر، نمر |
| نمسی، لمسی، نوسی | نمسی، لمسی |
| لمونځ، نمونځ، مونځ | لمونځ، نمونځ |
| نمانځه، لمانځه، مانځه | نمانځه، لمانځه |
| پسرلی، سپرلی | پسرلی، سپرلی |
| زغ، غږ | زغ، غږ |
| کښېنځل، ښکېنځل | کښېنځل، ښکېنځل |
| مینځل، وینځل | مینځل، وینځل |

## مختلف صورتونه

مینځه ، وینځه
لامده ، لانده
جینۍ، نجلۍ، جلۍ، جیلۍ
لمبر - نمبر

نواس - اواس
وېره - بېره - اېره
ویده - بیده - اوده
وياله - بياله - واله

اوبدل - اودل - اوبل
وزه - بزه - بیزه
انبتل - منبتل
بزرګان - ملکان - بزرګانان - ملکانان

کارغه - قارغه - کارګه
ن - نر
کجیر - قجیر
نوکه - برك - چکري - نوقه - برق - چقري

زره - نه - زه - زرهٔ - نهٔ - زهٔ
اوی - دوی - هغوی - او - دوىٔ - هغوىٔ
اوېدېز - وویل - اوئېدېز - اووئیل
یو - اینده - یوه - ائینده

ې

## فیصله شوی صورت

مینځه ، وینځه
لامده ، لانده
جینۍ ، نجلۍ
لمبر

نواس
وېره
ویده
وياله

اوبدل - اودل
وزه
انبتل
بزرګان - ملکان

کارغه
ن
کجیر
نوکه - برك - چکري

زره - نه - زه
اوی - دوی - هغوی
اوېدېز - وویل
یو - اینده

دا توری [مجهوله یا] باید بېځایه او د معروفی [یا] په ځای استعمال نشی .

## د سکندر وروستی لیك

# د مور په نامه

ګرانې مورې !

زه دا لیك په داسې حال کې وتاته لیکم چې دا ګړۍ یا بل ګړۍ به زما روح له بدن څخه لیرې کېږي .

مورې! د خدای [ج] اراده وه، چې زما د ژوند کمبله دې تواوسي د خدای د امر په مقابل کې څوك څه نه شي ویلای ددې او امرته ټولو موجوداتو د تسلیم سرا ښتې دي، نو زه یوه ذره څه کولای شم؟ او بله دې وینا چې هر امر پر سترګو منلی دی نو ر څه نه شم ویلای .

ګرانې مورې! د مرګ مخه نه ثروت او نه دولت ګرزولای شي، که په ثروت او پیسه دولت وای

د مخکې د مخ ټول بادشاهان او ستر تولواکان به اوس د ژوند پسر د ګر وای . او نه کوم دارو د مرګ درمل کولای شي، پدې ځای کې جالینوس، لقمان او نور حکماء ماشومان دي

پدې بې وفا نړۍ کې د هر شي بنیاد نړل کېږي مګر داسې څوك به نه وي پیدا شوی چې د مرګ بنیاد یې نړولی وي .

ګرانې مورې! که غواړې چې زما روح په قبر کې ښاد کې، زما په مرګ ډېره مه خواشیني کېږه ځکه، چې زه پدې ډیره خواشیني او ژړا بیرته نه ژوندی کېږم نو څه فائده؟ صبر و سکینه

د پاك خدای و دربار ته وکه .

پدې ځای کې زه ستا څخه غواړم چې زما د مرګ پر کمبله هغه څوك کښېنوه چې په ټول ژوند

کې یې له غم او درد نه وي لیدلی .

ستا زوی «سکندر»

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR A.M 'KARZI'

'SEPTEMBER' 1962

GOVERNMENTAL PRESS